په کوړنیو چارو کې لاس وهنې وی چه د ملک مجاهد و
مسلمانانو ته یې زیات تاوانونه وړ پیښ کړل ، او د هیواد
پوره آزادی لکه څنګه چه د مسلمانو مجاهدینو غوښتنه وه
ترسره نه شوه .

عبد الرّحمن سره د دی چه د خپل حکومت د ټینګښت
او امن راوستلو د پاره یې د یر کسان ووژل مګر د ملک هغه ځایونه
چه ترد ی وخته پوری هلته اسلام نه و ُخپور شوی په اسلام
مشرف شول لکه نورستان چه د اسلام څخه مخکی کافرستان

په نوم یادیده .

نوموړی پاچا د نورستان د تابع کولو لپاره غلام حیدر
خان څرخی مقرر کړ، چه وروسته د (۸) میاشتو څخه یې ټول
نورستان د اسلام په مقدس دین مشرف کړ او په مرکزی
حکومت پوری یې وتاړه .

د عبد الرحمٰن په وخت کې د انګلیسي استعمار چیانو
پټې مداخلې وې چه د روس د تزاري حکومت لپاره یې د
لاس وهنې فرصت پیدا کړ او افغانستان د وخت د دوه
سترو قدرتونو تر منځ د رقابت میدان وګرځید .

# د حبیب الله د پادشاهۍ دوره

د عبد الرحمٰن د مړینې څخه وروسته د هغه زوی
حبیب الله په (۱۳۱۹ ه ق) کال کې د پاچهۍ په تخت کښیناست
او د خارجي سیاست په هکله یې د خپل پلار روش غوره کړ
او د انګریزانو سره یې د ملک داریکو په هکله کوم بدلون رانه وست
څکه نو افغانستان هغسې د پخوا په شان د پوره استقلال څخه بې برخې
پاتې شو، دی یو عیاش او راحت طلبه پاچا و ، د (۱۸) کالو حکومت
څخه وروسته په (۱۳۳۷ ه ق) کال کې د لغمان په کله ګوش
کې د یو نامعلوم شخص له خوا ووژل شو .

ج ـ د امان الله د حکومت دوره او د انګریزانو سره دریمه جګړه:

د حبیب الله د مړینې څخه وروسته د هغه زوی امان الله په کابل کې د پاچهۍ اعلان وکړ په همدې وخت کې د هغه ورور نصرالله هم په جلال آباد کې ځان پاچا کړ مګر وروسته د خپلې دعوې څخه تیرشو او امان الله ته تسلیم شو.

امان الله چه څه وخت پاچا شو نو موږ مجاهدو مسلمانانو روحانیونو، مشایخو او مشرانو د پوره استقلال د لاسته راوړلو لپاره یو ځل بیا د انګلیسی استعمار ځپیانو په مقابل کې د ایمانی قوت د ښکاره کولو په منظور د جهاد د ډګر ته راووتل او د وخت د طاغوتی طاقت په مقابل کې یې خپله اسلامی مجاهده پیل کړه.

## دانګرېزانو سره د درېيمې جګړې پیل:

امان الله د موقع نه استفاده وکړه او د افغانستان د مجاهدو مسلمانانو د جهادي قوت ځنې د مقام او قدرت د لاسته راوړلو او ټینګولو لپاره د انګليسانو په مقابل کې د ملک د استقلال اعلان وکړ او د هیواد سرحدي ولایتونو ته يې خپل فوځونه ولیږل.

د خیبر دری خواته سپه سالار صالح محمد د فوځ په مشری ولیږل شو، او د ښمن په مقابل کې يې خپل سنګرونه ونيول، د افرید و مسلمان مجاهدين چه د حکومتي فوځ ملا تړي کاوه د یولي په ښخي خواکې يې د دښمن فوځ په شا وتمباوه، په دې وخت کې سپه سالار صالح محمد د انګلیسی دښمن ځنې د پیسو اخیستلو په سبب د خپلې کوټې يو

کوچنۍ تپ بهانه ونیوله او مجاهدینو ته یې د جنګ نه کولو امر وکړ.

دښمن د دې حالت څخه ګټه واخیسته او د ډکې ترسیمې پورې ځایونه یې ونیول.

په وخت کې د ننګرهار، لغمان، او کونړ مجاهد مسلمانان د خپلو ولسي مجاهدینو[1] ترمشرۍ لاندې د جهاد میدان ته را ووتل او په دښمن یې حملې شروع کړې، په نتیجه کښې مجاهدینو د ښمن څخه نیول شوې سیمې بیرته ونیولې او د دښمن فوځونه د ماتې خوړلو وروسته وتښتیدل.

---

(۱) الله د اسلام پوهـ شیخ پادشاه، د چکنور ملا صاحب، د بجوړې ملا صاحب، میر سلیم پاچا د کونړ میر زمان خان، د سکانو میا صاحب، حید رغازی صافی، د کونړ سید ګل پاچا، د سرو بی عبدالغفار خان، د چار باغ محمد سید صاحب او داسی نور.

دحکومتی فوځ ټولی یو لښکر د عبدالقدوس او غنډ مشر

غلام نبی خان ترمشری لاندې د قندهار محاذ ته ولیږل شو

دی سید وسره سم ځکه و نښته، حکومتی فوځ لومړی دمقاومت

توان په ځان کې و نه لیده په شا و لاړل او دښمن تری ځینی

ځایونه ونیول، مگرکله چه داوطلب مجاهدین دمحلی مشرانو(۲)

ترقوماندی لاندې دد ښمن سره د مقابلی لپاره دجنګ میدان

ته راوړسیدل، دتکبیر نارې یې پورته کړی او په دښمن

یې ورځ شپه کړه، دیرتا وانونه یې ور واړول او نیول شوی

ځایونه یې بیرته په لاس راوړل.

دپکتیا محاذ ته دحکومتی فوځونو یو بل لښکر د سپه

سالار محمد نادر، غنډ مشر مبارک شاه او غنډ مشر

محمد عالم ترمشری لاندې د دښمن دمقابلی لپاره هغی خواته

ولیږل شول، د دینی ـ

عالمانو او سرتیرو مجاهدینو[۳] په مرسته یې په انګلیسی
دښمن برید ونه پیل کړل، د او طلب مجاهدین د الله اکبر د
نارو په ویلو سره د تیری کوونکی غلیم په سنګرو ننوتل،
د دښمن مخابراتی وسیلی یې وشکولی د تیل او وانی کلاګانی
یې ونیولی. د هنګو او میرانشاه پوځی چوڼی یې کلابندکړی
او دښمن ته یې زیات تلفات پیښ کړل. لنډه دا چه د غلیم
پوځونه د مسلمانو مجاهدینو ایمانی قوت او د «الله اکبر»

---

[۲] لکه حاجی عبد العزیز خان، آخند زاده فضل حق خان، مولوی عبد الواسع
خان، سید نور محمد شاه، قزلباش آخند زاده، محمد رسول خان،
آخند زاده عبد الحق خان او داسی نور.

[۳] شهزاده فضل الدین، ملک موسی خان مسودی، زر خان وزیری،
عبد السلام خان، ملک محمد اکبر خان منګل، شاه دوله خان، ببرک خان
ځدرانی، محمد عالم خان اندړی، شیر محمد خان ګردیزی او داسی نور.

نا روا سخت وار خطا کړل، خپل معنویات یې د لاسه ورکړل

د پښتنو غوښتنه یې وکړه.

د سولې خبرې په (۱۳۹۷ هـ ش) کال کې په را وپېښېدو

کې پیل شوې او د خبرو اترو تخنه ور وسته د دواړو خواوو ترمنځ معاهده لاسلیک شوه چې د افغانستان استقلال په رسمیت وپېژندل شو.

دا د افغانستان د مسلمانو مجاهدینو د اسلام د پاکو لارښوونو سره سم د باطل په مقابل کې جهاد کول وو چې خپل مسلمان ملت یې د پردیو د جغ تخنه خلاص کړ مګر لکه چې آرزو یې وه دیوی اسلامی ټولنی په جوړېدو بریالی نه شول.

# دخپلواکۍ غځوروسته حالت

دخپلواکۍ غځه وروسته روسان دافغانستان حالت ته متوجه شول، دکمونیستي مفکورو خپرولو او دخپلوهد فونو د نسر ته رسولو لپاره یې امان الله ته د دوستۍ لاس را اوږد کړ دهمدې ځای غځه دافغانستان په کورنیو چارو کې د روسانو لاس وهنې پیل کیږي.

د روسانو سره د امان الله د اړیکو نږدې والي د افغانستان د مسلمانانو د قهر سبب شو، ځکه د یوې خوا وحشي روسانو د بخارا په مسلمانانو چه دخپلو حقه حقوقو د لاس ته راوړلو لپاره د هغوی سره په جهاد مشغول وو، ظلمونه او تیري کول، او دبلې خوا څه وخت

چه دروسانو د ظلم او تیری په لرکي یو زیات شمیر

بخارايي مسلمانان افغانستان ته مهاجر شول . او

غوښتل یې چه دد ی ځای مسلمانان د دوی ملاتړو کړي د

وخت حکومت ( د امان الله حکومت ) د دی پر ځای چه خپلو

بخارايي ورونو سره دد وی د اسلامی مجاهدی پلوی وکړي

په بخارايي مهاجرو یې سخت ظلمونه پیل کړل او افغانستان

ته یې د دوی مهاجرو د راتګ مخنیوی وکړ ، پدی د ول

د افغانستان مؤمنو مسلمانانو د امان الله سره کرکه

او نفرت پیدا کړ .

خصوصاً هغه وخت چه امان الله د اروپا او روسیې

د سفرو نو څخه هیواد ته را وګرځید او په افغانستان کې

یې د شرق او غرب د بې معنی فرهنګ خپریدل شروع

کړل او اسلامی اصیل تهذیب یې تر پښو لاندی کړ ، دا

افغانستان کې وی او یا که په پاکستان، ایران، عربستان او نورو اسلامي هیوادو کې وي یو د بل ورو نه کمل کیږي نوښنائ چه د مسلمانانو د ټولنو ترمینځ د د وستی، ورورکلوی او مرستی کولو رابطې موجودې وي.

## پوښتنې

۱- لمړي پیغمبر څوک ولوم یې واخلی؟

۲- لمړنی سړي د مخکی پر مخ څوک و؟

۳- د تاریخ لوستل څه کټه لري؟

۴- ځمکه او آسمان چا پیدا کړي دي؟

۵- ستاسو د کورنۍ غړي څوک دي؟

٦- مدرسه د څه شي د زده کړې ځای دی؟

۷- د علم زده کړه څه کټه لري؟

۸- یو عالم په ټولنه کې څه رول لري؟

کړکه اونفرت لا پسی زیات شو.

په افغانستان کې د امان الله پوسیله د اسلامی فرهنګ اواخلاقو پرځای د غیراسلامی پروګرامونو عملی کول وو چه د نوموړي ملک ټول مجاهد مسلمانان، روحانیون او عالمان یې په قهرکړل او د هیواد ټولو اوسیدونکو یې په مقابل کی د جهاد آواز پورته کړ او په هرځای کې مسلمانان د حکومت په ضد وسنوریدل، داوخت وُچه په کوهد امن کې حبیب الله نای د حکومتی لاروپه بند ولو لاس پورې کړاو وروسته دومره قوی شوچه په کابل یې حمله وکړه، امان الله د مقاومت توان په ځان کی نه لیده، قندهارته وتښتید اوبیا دهغه ځای څخه بهرته ووت، حکومت یې نسکورشواوحبیب الله چه ځان یې د رسول الله ددین خادم باله قدرت ته ورسیده، ده (۹) میاشتی حکومت

وکړ اوو روسته له مينځه لړی شو او محمد نادر يې پر ځای
په تخت کښيناست .

## پوښتنې :

۱- ایا د عبد الرّحمٰن د راتګ سره د انګلیسی استعمار چپانو
لاس ژموښ د هیواد څخه لنډ شو ؟

۲- د کوم پاچا په وخت کی زموښ هیواد د وخت د د وه سترو
وینی ځښونکو قوتونو په مینځ کې د رقابت میدان شو ؟

۳- د حبیب اللّٰه په مینځ ته راتلو سره په خارجی سیاست
کې کوم بدلون راغی ؟

۴- د انګریزانو د دریم تیری په وخت کې د اوطلب مجاهدینو
کوم نقش ولوباوه ؟

۵- د انګلیسانو او امان اللّٰه د حکومت ترمینځ د سولی
خبری په کوم ځای کې وشوی ؟




نشروونکی اداره:






مؤسسه تحویل کننده: سویدن
و بازار مشترك اروپا (EC)
سال چاپ: ۱۳۷۸ هـ.ش
تعداد: ٦٤١١
طبع: Rehmat Printing Press

٦ـ د امان الله په وخت کې رو سانو د څه لپاره افغانستان
ته لاس رااوږد کړ؟
٧ـ د رو سيې اوارو پا د سفرونو ورو سته امان الله د کوم
پروګرام د سرته رسولو غوښتنه کوله؟
٨ـ د افغانستان مجاهد مسلمانانو، روحانيون او عالمان
د څه لپاره د امان الله په مقابل کې راپاڅيدل؟
٩ـ د امان الله د حکومت د نسکوريدو ورو سته څوک مينځ
ته راغی؟
١٠ـ حبيب الله نامی چه پاچا شو په ځان يې کوم نوم کيښود؟

# دوهم فصل
# جغرافیه

تعریف :

جغرافیه هغه علم دی چه د ځمکی حالات بیانوی .

مثلاً د ځمکی د مخ غرونه ، غونډی ، دښتی ، میدانونه د ځمکی حاصلات ، ځنګلونه ، دریابونه ، سیندونه ، او سیدونکی او داسی نور څیزی .

# ځمکه

ځمکه دوه برخې لري :

اول : د ځمکې د مخ هغه برخه چه اوبو نه ده نيولې لکه د کرنې ځمکې، دښتې، غرونه، بنارونه او داسې نور .

دوهم : د ځمکې د مخ هغه برخه چه اوبو نيولې ده او د درياب نو، جهيلونو او سيندونو په نامه ياديږي .

غرونه : د ځمکې هغه لوړې برخې چه د ډبرو، شګو او نورو معدنې موادو څخه جوړې شوي وي د غرونو په نامه ياديږي .

غونډۍ : غونډۍ د غرو څخه ټيټې دي چه د خاورو شګو او ډبرو څخه جوړې شوي دي . ځينې غونډۍ د کښت لپاره مناسبې دي او للمي کرنه په کې کيږي .

**دښبته** : دښته د ځمکې پر مخ هغه هواره او پراخه سیمه ده چه رواني اوبه نلري د پسرلي په موسم کې ځینې واښه او ګلان په دښتو کې شنه کیږي خو په اوړي کې د تودوخې له امله وچیږي.

زوږ، غزا او داسې نور نباتات چه ډیرو اوبو ته ضرورت نلري په دښته کې شنه کیږي.

**چینې** : د واورې او باران اوبه یو څه اندازه د ځمکې لاندې زیرمه کیږي دغه اوبه د ځمکې د سوریو څخه د چینو په شکل راوزي. د چینو اوبه پاکې دي، د څښلو او کرنې لپاره ورڅخه کار اخستل کیږي.

د ځینو چینو اوبه د پوستکي د ناروغیو علاج هم کوي.

## سیندونه :

د واورې او باران اوبه د غرو او غونډیو څخه راځي او د نورو اوبو سره یوځای کیږی او سیندونه جوړوی د سیندونو څخه د کرنې د ځمکو په خړوبولو او د بریښنا په تولید کې کار اخستل کیږی.



دلتا : ځيني سيندونه بحرونو ته دلويدواو
تويدونه ځمکي په وړو اوکوچنيو بنا خونوويشل
کيږي چې ديو مثلث شکل غوره کوي-
هدغه مثلث شکل ته دلتاويل کيږي .
لکه : دنيل د سيند دلتا يا نورې .



## جهيل :

دځمکې پرمخ ډېر لوی ژور طبيعي ځای دی چه له اوبو څخه ډک وی. دځينو سيندونو اوبه جهيل ته توئيږي او هلته راټوليږي ځينې جهيلونه خوږې اوبه لري، ځينې يې مالګه لري چه اوبه يې ترخې وی دی.



**خلیج ؛** خلیج هغو زیاتو اوبو ته وېل کیږي چي درېو خواو ته يې وچه او یوې خوا ته يې د بحر یا بحیرې اوبه وي لکه د فارس ، بنګال — او سیام خلیجونه .



جزیره «تاپو»، د ځمکې یوې ټوټې وچې ته چې څلورو خواوو ته یې اوبه موجودې وي جزیره ویل کیږي. لکه: د ګرینلنډ، سریلنکا-جاپان او نورې جزیرې.



**جزیره نما:** (ټاپو وزمه) یوه ټوټه ځمکه چې درې خواوته یې اوبه وي او یوه خوایې په وچې پورې نښتې وي د جزیره نما په نوم یادیږي. لکه: د عربستان جزیره نما- چې په اسیاکې ده او یا په شمالي امریکاکې دلابراډور جزیره نما.



خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا

سورة الزمر آیهٔ (٦)

# لمړی فصل

## الف ـ د ځان پیژندنه :

تاریخ موږ ته د تیرو وختو کړه وړه د وخت او ځای په پیژندلو سره بیانوی.

ترڅو چه د هغو د ښو کارونو پیروی او د بدو کارونو څخه ډډه وکړو. او پیدی باید پوه شو چه

په شمالي امریکا کې د لابرادور جزیره نما ،



مجمع الجزایر: د ځو جزیرو مجموعې ته چې تولې سره یو ځای پرتې وي مجمع الجزایر ویل کیږي.

لکه: د جاپان او فلپاین مجمع الجزایر او داسې نور.



ابشار ؛ کوم سیند ونه او یالوی نهرونه چې د لوړو او جګو ځایونو نه لاندې را توئیږي د ابشار په نوم یادیږي، لکه د نیاګارا ابشار چې د نړۍ د مشهورو ابشارونو څخه شمېرل کیږي.



قله (څوکه): د غره ډېرې هسکې نقطې ته قله (څوکه) وېل کېږي، لکه په هندوکش کې د تراجمیر څوکه.



اورغورځوونکي غرونه «اتش فشان» ځيني وختونه د غرو د څوکو نه اور، دود ايرې او د لاوا په نامه نور مواد راوزي چې ځنګلونه او کورونه سيځي دې ډول غرونو ته اور غورځوونکي غرونه ويل کيږي، دا غرونه په جاپان کې ډېر دي.



-ابنا ، هغه نری اوبه دي چې دوه وچې سره جلاکوي
اودوه اوبه سره نښلوي، لکه په مصرکې د سویز ابنا-
اویاپه ترکیې کی دباسفورس ابنا .



**خاکنا** - هغه نرۍ اوږده وچه ده چې دوه اوبه سره جلا کوي او دوه وچې له يوې بلې سره نښلوي.



**لوړه سطحه**: هغې ځمکې ته ویل کیږي چې نسبت خپلې شاوخوا ځمکې ته اوچته او لوړه واقع شوي وي، لکه د پامیر لوړه سطحه چې د نړۍ د بام په نوم یادیږي، د الوړه سطحه د افغانستان په شمالشرق کې واقع ده .



صحرا، هغه لويه او پراخه ځمکه ده چې د شګو او کاڼو نه جوړه شوې لوړه کډه وي هوا يې ډېره ګرمه او بارانونه پکې ډېر لږ اوري، په صحراګانو کې هستوګنه ډېره سخته ده. د عربستان او په چين کې د ګوبي صحراګانې د نړۍ د مشهورو صحراګانو څخه شمېرل کېږي.



## پوښتنې:

۱- جغرافيه د څه شي څخه بحث کوي؟

۲- ځمکه په څو برخو ویشل شوې ده؟

۳- غرونه د څه شي څخه جوړ شوي دي؟

۴- چینې څه ډول مینځ ته راځي؟

۵- سيند ونه څه کته لري؟

۶- جهيل څه ته وائي؟

۷- د ښتې څه شی دی؟

۸- په د ښته کی څه ډول کیاوی شنی کیږي؟

۹- جزیره څه ته وائي؟

۱۰- د لتا څرنګه مینځ ته راځي؟

۱۱- صحراوې د څه شي نه جوړې شوي؟

۱۲- اور غورځوونکي غرونه کوم يو دی؟ ۱۳- آبنا څه ته وائي؟

مونږ انسانان یو او خدای (ج) د خپل عبادت او کار دپاره پیدا کړی یو. نور موجودات چه د ځمکی پر مخ لیدل کیږی په حقیقت کی د انسانانو د کمتی لپاره پیدا شوی دی. ټول انسانان چه د ځمکی پر مخ ژوند کوی د یو پلار او مور آدم علیه السلام او بی بی حوا اولاده ده.

پدی توګه آدم علیه السلام د ځمکی پر مخ لمړنی انسان وُ چه د خدای ج اله لوری په ځمکه خلیفه وګرځول شو. او هم لمړنی پیغمبر وُ چه د خدای (ج) احکام به ئی خپلی اولادی ته د نیکی او سمی لاری د ښودلو او د یوه خدای (ج) د عبادت کولو لپاره ښودل.

# براعظم

دځمکی دمخ وچه په شپږو لویو برخو ویشل شوی ده، چه هری برخی ته ئی لویه وچه یا براعظم (قاره) وائی.

دځمکی د شپږو لویو وچو (براعظمو) نوموونه دادی:

آسیا، افریقا، اروپا، امریکا، آستراليا، او انترکتیکا.

چه همیشه یخ نیولی ده.

# بحر

دځمکی هغه برخه چه اوبو نیولی ده په څلورو لویو برخو ویشل شوی ده، چه هری برخی ته ئی بحر وائی.

دڅلورو بحرونو نوموونه دادی: دهند بحر، شمالی منجمد بحر

داطلس یا اتلانتیک بحر، بحرالکاهل یا آرام بحرله بحرونو څخه زیاته اندازه کانی مواد، مالګی اوکبان لاس ته راځی.

بحیره: د اوبو هغه لویه ټوټه ده چی له بحرونو څخه کوچنی وی په نړۍ کی د مدیترانی بحیره، سره بحیره، توره بحیره او داسی نوری خورا مشهوری دی.

## دآسیالویه وچه (براعظم):

آسیا د نړۍ دلویو وچو څخه یوه لویه پخوانی مشهوره وچه ده دالویه وچه دنفوسو د زیاتوالی اومساحت له مخی هم ډیر شهرت لری. خدای (ج) پدی لویه وچه کی د بندګانو د هدایت د پاره ډیر پیغمبران په پیغمبری باندی مبعوث کړیدی.

زمونږ د مسلمانانو ستر پیشوا حضرت محمد (ص) هم د دی لوی وچی په یو اسلامی هیواد (عربستان) کی د مکی معظمی په ښارکی زیږیدلی او لوی شوی دی.

پدی لویه وچه کې مشهور غرونه، سیندونه او کانې ذخیرې شته. چه له اوسپنې، طلا او نفتو څخه عبارت دي او نفت یې خورا ډېر شهرت لري.

## ۱- د آسیا طبیعي جوړښت:

د آسیا لویه وچه لوړ غرونه لري چه مهم یې د همالیه غرونه دي. لوړه څوکه یې د (یورست) په نامه یادېږي چه (۸۸۴۸) متره لوړوالی لري. د آسیا د غرونو نوري سلسلې د التائي - تیانشان هندوکش او البرز په نامه سره یادېږي.

## ۲- د آسیا سیندونه:

د آسیا مشهور سیندونه په شمال کې اوبي ینسي او لینا، او په مشرق کې هوانگهو، ینگسي کیانگ، میکانگ او په جنوب کې سند او گنگا دي.

## ۳- دآسیادلوی وچی څلورخواوی :

شمالی خواته ئې منجمد شمالی بحر، جنوب خواته ئې د هند بحر، ختیزخواته ئې دکاهل بحراولویدیزخواته ئې د اروپالویه وچه پرته ده. پدی لویه وچه کې ډیرهیوادونه پراته دی. چه زمونږ گران هیواد هم دهمدی ډلې څخه دی. ددی لویې وچې ډیرمشهور هیوادونه د ترکیې ایران، سعودی عربستان، پاکستان، هندوستان، چین، جاپان، اندونزیا، تاجکستان، ازبکستان، ترکمنستان او زمونږ گران شهید پالونکی اسلامی هیوادافغانستان څخه عبارت دی چه زمونږگران هیواد افغانستان هم ډیرشهرت ځانته حاصل کړیدی.

دآسیا دلوی وچی اوسیدونکی په مختلفوژبوخبری کوی. چه مشهوری ئې عربی، هندی، اردو، چینایی، جاپانی، پښتواوفارسی دی.

نوموړی لوی وچی زیات شمیراوسیدونکی داسلام دسپیڅلی دین پیروان دی.

پوښتنې:

۱- د آسیا لوی غرځه نومیږي

۲- حضرت محمد (ص) په کومه لویه وچه کې زیږیدلی دی؟

۳- د آسیا څلور خواوې ووایاست؟

۴- د آسیا مشهور هیوادونه کوم دي؟

۵- د آسیا اوسیدونکي په کوموږبو خبرې کوي؟

۶- د آسیا مشهور سیندونه کوم دي؟

# دریم فصل

# دعربستان جزیره نما

## الف ـ موقعیت :

دعربستان ټاپو وزمه دآسیا دلوېدیځ په جنوب لویدیځه برخه کې پرته ده، روانی اوبه او سیند ونه په کی ډیرنه لیدل کیږی، ځکه نو دکرهنې او زراعت دپاره مساعد ځایونه لږ لری، دخرماونی په کی زیاتې دی ځکه چه دوی مره او بوته اړتیا نلري.

دا و سید ونکو مهم شغل: د اسلام څخه مخکی دعربستان دټاپوزمی زیاتره اوسید ونکی کوچیان او مالداران وو، او د

خلکو مهم کسب سوداګري وه. مشهور ښارونه ئې مکه معظمه یثرب (مدینه منوره)، شام، بصره او یمن وو، چه د همدې ځایونو ښارونو ترمنځ د سوداګرۍ مالونه وړل او راوړل کیدل.

د عربستان په ټاپو وزمه کې د مکې معظمې ښار ډیر شهرت درلود. ځکه چه د یوې خوا د سوداګرۍ بازار و او د بلې خوا ئې مذهبي اهمیت درلود او هر کال به یو زیات شمیر کسان د هر ځای څخه د زیارت کولو د پاره دې ښار ته راتلل.

## ب - د اسلام څخه د مخه وضعیت:

د اسلام د مقدس دین څخه مخکې د عربستان په ټاپو وزمه کې هر راز بې عدالتی او ظلمونه روان وه. هر قوم او هرې قبیلې د عبادت په منظور ځانته بیل - بیل بتان درلودل، سود خوړل، جواری کول، د نجونو ژوندی ښخول، لوټول

کور نی جګړې او داسې نورو ناوړه کارونو رواج درلود.

د اسلام د مقدس دین د راتګ سره سم د غه ټولې بې عدالتې او بدمرغۍ په یوه مخ له منځه ولاړې او خلک د هوسا او نیکمرغه ژوند خاوندان شول.

د عربستان ټاپو وزمه د استعمار د لاسه اوس په څو هیوادونو ویشل شوې ده لکه: سعودي عربستان، عراق، سوریه، کویت، اردن، بحرین، لبنان، قطر، د عربو امارتونه، عمان شمالي یمن او جنوبي یمن.

## سعودي عربستان:

د عربستان د ټاپو وزمې لوی او مشهور هیواد سعودي عربستان دی چه زیاتره اسلامي مقدس ځایونه پکې دي، د هغې جملې څخه یو د مکې معظمې په ښار کې بیت الله شریف دی چه د ټولو مسلمانانو قبله ده.

بل د مدینې منورې ښار دی چه د حضرت محمد (ص) مبارکې روضې پې مقام لوړ کړی دی .

د سعودی عربستان نوموړې دوه ښارونه د ټولو مسلمانانو د پاره ډیر زیات معنوی ارزښت لری او هر کال په لکونو حاجیان د حج د فریضې د ادا کولو د پاره د مکې لیدنه او زیارت کوی .

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ج يُكَوِّرُ الَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى الَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ط اَلَا هُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ ۝ (سوره الزمر ۵)

## ب ـ دخدای (ج) د مخلوقاتو پیژندنه :

ټوله نړۍ دخدای (ج) له مخلوقاتو څخه ده. چه د هغې جملې څخه ځمکه، آسمان، لمر، سپوږمۍ، ستورې، شپه او ورځ او نور دانسانانو د ګټې لپاره پیدا شوي دي. دا نظام د خدای (ج) په قدرت اداره او ساتل کیږي او په یو خاص نظم خپله وظیفه ترسره کوي او د هغوی کار کې هیڅ ډول بې نظمي نه لیدل کیږي. چه مونږ د نجوم او جغرافیې د علومو په مرستې د هغه په مطالعه پیل کوو.

مونږ د دې علومو په مرسته کولای شو چه د لمر، سپوږمۍ، ستورو، ځمکې، سیندونو او غرونو



د عربستان دنیا پوروزي نقشه
سوریه
لبنان
اسرائیل
اردن
عراق
کویت
د ایران اسلامي جمهوریت
ریاض
مدینه منوره
مکه معظمه
سعودي عربستان
د فارس خلیج
بحرین
قطر
د عربو متحده اماراتونه
عمان
شمالي یمن
جنوبي یمن

ج ـ د حضرت محمد (ص) زیږیدنه (میلاد):

دمکې معظمې په ښار کې د قریشو په نوم یوې قبیلې ژوند کاوه چه په دوه کورنیو ویشل شوې وه چه یوې بنې هاشم او بلې بنې امیه نومیده. دبنی هاشم کورنۍ د کعبې د خونې سرپرستي په غاړه درلوده، ددې کورنۍ مشر عبد المطلب نومیده چه دمکې ټولو اوسیدونکو یې احترام کاوه. د عبد المطلب لس ځامن وه چه دهغوی له جملې نه حضرت عباس (رض)، حضرت حمزه (رض)، حضرت عبد الله، ابولهب او ابوطالب مشهور دي.

عبد الله د بي بي آمنې سره نکاح وکړه او د نکاح څخه وروسته د قریشو دیو تجارتي کاروان سره شام ته ولاړه د راتګ په وخت کې مدینې منورې ته نږدې ناروغه او وفات شو او په همغه ځای کې خاورو ته وسپارل شو.

د عبد الله د مړینې څخه درې میاشتې وروسته د دوشنبه په ورځ د ربیع الاول "لمړې خور" په دولسمه نیټه

چه (۵۷۱) عیسوی کال ؤ د سهار په وخت د مکې د ښار د بي بي آمنې په کور کې یوماشوم دنیاته تشریف راوړ. چه دده د تولد سره سم بتان نسکور، د ظلم او استبداد ماڼۍ ړنګې د زړو کلونو آتشکدې مړې او د ساوه سیند وچ شو.

عبد المطلب چه څه وخت د خپل لمسي د تولد څخه خبر شو، د بي بي آمنې کورته ورغی، خپل لمسی یې په غیږ کې واخیست د کعبې خونې ته یې یووړ، طواف یې ورکړاو بیا ئې پرې د محمد (ص) نوم کیښود، څو ورځې وروسته یې د قریشو د عادت سره سم محمد (ص) یوې دایې ته چه بي بي حلیمه نومیده وسپاره، چه په آزاده هوا کې او د ښار څخه لرې ور وزل شي، د څلورو کلونو پورې د بي بي حلیمې سره ؤ او وروسته بیرته خپلې مور بي بي آمنې ته راوستل شو.

څه وخت چه حضرت محمد (ص) د شپږو کلونو شو مور یې

وفات شوه او ددی مبارک پالنه د عبد المطلب په غاړه شوه . د عمر په اته کلنی کې بې نیکه چه عبد المطلب نومیده هم وفات شو .

## د- د حضرت محمد (ص) پالنه د ابوطالب له خوا،

د نیکه د وصیت سره سم د حضرت محمد (ص) پالنه د ابو طالب په غاړه شوه، ابوطالب چه د حضرت محمد (ص) تره وُ. د خپلو ځامنو څخه ئې زیات دخپل وراره په پالنې کوښښ کاوُ.

کوم وخت چه حضرت محمد (ص) دولس کلن شو د خپل تره سره د سوداګرۍ د پاره شام ته ولاړ. هلته یو عیسوی راهب چه بحیرا نومیده حضرت محمد (ص) ولیدُ څرنګه چې

د انجیل له مخې یې د آخری زمانې د پیغمبری نښې په حضرت محمد (ص) کې ولیدې ځکه نو د ابوطالب څخه ئې وغوښتل چه د شام د سفر څخه بیرته ستون شی ترڅو وراره ته ئې ضرر ونه رسیږی . هماغه وُچې خپل

مالونه یې خرڅ کړل او ابو طالب دخپل وراره سره بیرته د مکې

خواته راستون شو.

حضرت محمد (ص)، د وړو کتوب څخه د ښو او نیکو اخلاقو

خاوند ؤ. د خلکو په مینځ کې یې په صداقت، رښتیا او امانت

دارۍ سره شهرت درلود په دې توګه خلکو (امین) باله.

## ۵- د بي بي خدیجې (رض) سره د حضرت محمد (ص) نکاح:

د مکې په ښار کې یوه شتمنه، شریفه او پوه کونده او سپید لرچه

یې بي بي خدیجه نومیده. څه وخت چه د حضرت محمد (ص)،

صداقت او امانتدارې بي بي خدیجې ته معلوم شوه د انحضرت

محمد (ص)، څخه یې وغوښتل چه د هغې د تجارتي کاروان سره شام

ته ولاړ شي.

رسول اکرم (ص)، د خپل تره په مشوره دا بلنه ومنله

او د بي بي خدیجې د یو غلام سره چه میسره نومیده شام ته

ولاړ.

په لار کی د یوه عیسوي راهب سره چه نسطورا نومیده مخامخ شول څرنګه چې دی راهب ته د محمد (ص) پیغمبری د انجیل له مخې معلومه وه ځکه نو دوی یې په شام کې چې د یهودیانو د شراوضرر ځخه خبر کړل، پدی توګه حضرت محمد (ص) خپل د سوداګرۍ مالونه په ښه بیه خرڅ کړل او بیرته مکی معظمی ته راستانه شول، د راتګ څخه وروسته میسره د حضرت محمد (ص) امانت داري او نیک سلوک بي بي خديجې ته بیان کړدی توګه بی بی خدیجې د حضرت محمد (ص) څخه د نکاح غوښتنه وکړه.

آنحضرت (ص) دا غوښتنه ومنله او د نکاح مراسم د بي بي خدیجې په کور کې سرته ورسیدل پدی وخت کی حضرت محمد (ص) ۲۵ کلن او بي بي خدیجه (رض) د (۴۰) کلونو وه.

## و- دحجرالاسود ایښودل:

د بعثت څخه د مخه چه کومه پیښه واقع شوی ده هغه د حجرالاسود د ایښودلو واقعه ده.

څه وخت چه مکی او سید ونکو د کعبې خونه جوړوله د خو قبیلو تر مینځ د حجرالاسود د برې په ایښودلو یوه سخته شخړه پیدا شوه، هری قبیلې غوښتل چه د حجرالاسود د ایښودلو عزت ترلاسه کړي، نږدی وُچه د نفاق اور بل شی پدی وخت کې ځینو سپین ږیرو کسانو داسی پریکړه وکړه چه که هرڅوک د سهارله خوا لومړی حرم شریف ته ورننوځی مینځ کړیتوب به یې منل کیږی.

څه وخت چه ولید ل شول لومړنی شخص چه هلته راغلی وُ حضرت محمد(ص)، وُچه تولو (امین) باله.

حضرت محمد(ص)، د حجرالاسود د بره په یو څادر کښی

واچوله او د قبیلو مشرانو ته یې د ځای د ځوکې په لاس ورکړې
وروسته حضرت محمّد (ص) د بره واخیسته او په خپل ځای کې
یې کیښوده ، پدی ډول د نفاق اور مړ ، او د قبیلو ترمینځ دا
لویه شخړه د حضرت محمد (ص) په برکت سرته ورسیده .

## ح ـ د حضرت محمد (ص) بعثت :

حضرت محمد (ص) د څلویښت کلونو په عمر کې په پیغمبری مبعوث
شو او پدی ډول د اسلام مقدس دین ظهور وکړ .

پدی وخت کې په ټول عربستان کی د بتانو عبادت کیده ،
حضرت محمد (ص) خلک د بتانو د عبادت څخه د یو خدای (ج)
پیروی او عبادت ته را وبلل . امّا د مکی کافرانو دښمنی ورسره
را واخیسته او ډیر تکلیفونه یې ورته ورسول .

حضرت محمد (ص) دیارلس کاله په مکه معظمه کې خلک د

اسلام پاک دین ته دعوت کړل ولی د زیاتی دښمنی په نسبت چه کافرانو ورسره شروع کړی وه د خدای (ج) په امر یې د مکې څخه مدینې منورې ته هجرت وکړ

د مدینې منورې اوسیدونکو د حضرت محمد (ص) او نورو مهاجرینو ته دهر کلی وکړ او بیا یې ډیر کومکونه او مرستې ورسره وکړې، پدې توګه د مدینې اوسیدونکی د انصارو په نوم یادشول .

حضرت محمد (ص) لس کاله په مدینه منوره کې د اسلام د پرمختګ لپاره په بلنه او دعوت کې تیر کړل او د اسلام پاک دین یې په ټول عربستان او شا او خوا سیمو کې خپور کړ. د کفر او شرک د له مینځه وړلو لپاره یې غزا گانې وکړې او خلکو ته یې د توحید ، نیکو اخلاقو ، صداقت ، وفا ، ورورۍ ، صلحې او د اسلامی ژوند تعلیم ورکړ ، د رویشت کاله یې د

خدای (ج) په امر د اسلام د پاک دین په خپریدو کی تیر کړل ،
او څه وخت چه یې خپله د پیغمبری وظیفه په ریښتینی توګه
سرته ورسوله د (٦٣) کلونو په عمر یې د دی فاني دنیا
څخه رحلت وکړ.

## د اسلام پاک دین :

د اسلام پاک دین د خدای (ج) دلوري د حضرت جبرائیل ع
په وسیله په حضرت محمد (ص) باندی نازل شو.

د ډیرو سختیو د کاللو څخه وروسته یې د امبارک دین
دنړۍ ګوټ ګوټ ته یې له زیاتوالی او کموالی ورساوه .

اسلام یو آسمانی دین دی چه سرچینه یې قرآن کریم
او د حضرت محمد (ص) سنت دی .

د اسلام پاک دین په خپلو ټولو حکمونو او لارښوونو
کې د حق په لور د خلکو بلونکی ، د باطل څخه منع کوونکی او د

په هکله پوره معلومات ترلاسه کړو .

## ج : دڅلوروخواووپیژندنه :

ټول پوهیږو چې لمر حرکت د ښکاره کوي. او په شرمی کې دهغه له تود وخې نه کتنه اخلو او په اوږی کې میوی او نوری غلی دانې پخوی . دهمدغه لمر په وسیله دا هم کولای شو چه څلور خواوی و پیژنو او خپل کور یا کوڅه او لاره پیدا کړو

دمثال په ډول : که چیری څوک په خپل کورکې دلمانځه دادا کولو لپاره دقبلی په طرف داسی ودریږی چه شایی دختیز (مشرق)، په لور او څ ئې دلویدیز (مغرب) په لور وی، نوښی لاس ته به یې شمال او چپ لاس ته به یې جنوب وی .

او س مونږ د لمر په مرسته کولای شو چه څلور خواوی او هم د خپل سېوو نځی او کور لاره پیدا کړو .

هرراز نیمګړتیا او وخته پاک دی .

د اپاک دین به د قیامت د ورځې پورې د انسانانو د لار ښوونې او خلاصون یوازینی نجات ښونکی لار وی.

هرڅوک چه د اسلام د مقدس دین پیروی وکړي ده هر ځای او هر نژاد څخه چه وی مسلمان ورته ویل کیږی. پدې دین خدای (ج) د اسلام نوم اینبی دی او د خپلو بندګانو لپاره یې خوښ کړی دی. که څوک د اسلام د سپیځلی دین څخه پرته د بل کوم دین پیروی کوی د خدای (ج) په وړاندی نه منل کیږی او هغه به کافر او زیانکار وی .

د اسلام پاک دین د ټولو آسماني دینونو وروستنۍ او کامل دین دی او د آخرې زمانې په پیغمبر حضرت محمّد مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم چه خدای (ج) ورته د خاتم النبیّین لقب ورکړی دی نازل شوی دی .

## پوښتنې:

۱- دعربستان تاپوزمه چیرته پرته ده؟

۲- دعربستان د تاپوزې داوسیدونکو مهم شغل څه و؟

۳- داسلام څخه د مخه په عربستان کې کومې بې عدالتي روانې

وې؟

۴- دکوم شي په راتګ سره هغه ټولې بې عدالتۍ چه په -

عربستان کې وې د مینځه ولاړې؟

۵- د سعودي عربستان مشهور ښارونه کوم دي؟

۶- په مکه معظمه کې کومو قبیلو ژوند کاوه؟

۷- دبني هاشم د قبیلې مشر څوک و؟

۸- حضرت محمد (ص) څه وخت دنیاته تشریف راوړ؟

۹- دحضرت محمد (ص) د زیږیدنې سره سم کومې پیښې

واقع شوې؟

۱۰ـ د حضرت محمّد (ص) دایي څوک وه ؟

۱۱ـ حضرت محمّد (ص) د څو کلونو وُچه مور یې وفات شوه ؟

۱۲ـ حضرت محمّد (ص) څو کلن وُچه د خپل تره سره د شام په لور ولاړ ؟

۱۳ـ حضرت محمّد (ص) ته ولی دمکی خلکو د (امین) لقب ور کړی وُ ؟

۱۴ـ حضرت محمّد (ص) په دوهم سفرکی د چامالونه د سوداګری لپاره شام ته وړی وو ؟

۱۵ـ حضرت محمد (ص) څو کلن وُچه د.بي.بي خدیجی (رض) سره یُې نکاح وکړه ؟

۱۶ـ کوم وخت چه د حجرالاسود په ایښو دلوکی نزاع پیداشوه د چاپه برکت دا نزاع له مینځه ولاړه ؟

۱۷ـ حضرت محمد (ص) څو کلن وُچه په پیغمبری مبعوث شو ؟

۱۸ـ حضرت محمّد (ص) څوکاله په مکه معظمه کی خلک اسلام ته دعوت کړل؟

۱۹ـ حضرت محمّد (ص) ولې دمکې څخه مدینې منورې ته هجرت وکړ؟

۲۰ـ حضرت محمّد (ص) څوکاله په مدینه منوره کی د اسلام په دعوت کې تیرکړل؟

۲۱ـ حضرت محمد (ص) دڅوکلنی په عمر دنیا څخه رحلت وکړ؟

۲۲ـ د اسلام پاک دین دخدای (ج) له لوري دچا پواسطه او پر چا نازل شو؟

۲۳ـ څوک چه داسلام دمنلو څخه ډډه وکړي هغه ته څه ویل کیږی؟

۲۴ـ آیا د اسلام پاک دین وروستی آسماني دین دی او بل دین نه راځي؟

# څلورم فصل

# افغانستان او اسلام

## ۱- د اسلام څخه د مخه د افغانستان وضعه:

افغانستان د اسلام د مقدس دین د راتګ څخه مخکې د آریانا په نوم یادیده، چه وروسته بې نوم په خراسان بدل شو، او د اسلام د راتګ په وخت کې په همدې خراسان یادیده، په دې وخت کې د خراسان یعنې افغانستان سیمو ځانته جلا - جلا حکومتونه درلودل او کوم واحد حکومت په کې نه وُ، محلي حاکمانو په خلکو سخت ظلمونه کول، باطلو دینو نو لکه زردشتي بودایي، برهمني او داسې نورو د ملک خلک لا پسې د

کړاوونو سره مخامخ کړی وو.

په مختلفو بوخبری کیدی، چه دهیواد یووالی یې نور هم کمزوری کړی وُ.

دملک وضعه له هره پلوه ورځ په ورځ مخ په خرابیدو وه، زده کړه، صنعت او پوهه هم ډیره کمزوری وه، د ملک ټول او سیدونکی ددی وضعی څخه ناخوښه وو، لنډه دا چه نوموړی هیوادته دیو بدلون ضرورت وُ، داسی بدلون چه باطل دینونه محوه، نفاق ختم، دظلمونو مخنیوی وکړی او مظلومانو ته د دوی حق ورسوی، یو دین او یوه عقیده مینځ ته راوړی، او د دی ټولو کړو یو د پاره مناسبه لارپیدا کړی.

پدی وخت کې د نیکه مرغه د اسلام د پاک دین رڼا خپره شوه، دا رڼا افغانستان ته را ورسیده او دا هیواد یې د ټولو

هغو بد بختیو څخه خلاص کړ، کوم چه پری اخته وُ.

## ۲- په افغانستان کې د اسلام خپریدل:

څرنګه چه د اسلام پاک دین یوازی د یو قوم او یو ملک لپاره ندی (۱)، بلکه د ټولی نړی د انسانانو لپاره خدای (ج)، نازل کړی

---

(۱) وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢٨﴾

ترجمه: او نه یې لیږلی مونږ ته مګر په دی حال کې چه جامع یې خلکو ته زیری ورکوونکی او ویره ورکوونکی. او لیکن اکثر خلک نه پوهیږی.

پاره (۲۲) سوره سبا آیه (۲۸)

ځکه د اسلام پیغمبر حضرت محمّد (ص) او د هغه خلیفه گانو غوښتل چه د ارښتینی دین ټولې نړۍ ته ورسوی.

پدی توکه یې خپله بلنه او دعوت په عام ډول ټولو انسانانو ته پیل کړ.

راشدینو خلیفه گانو هم د خاتم النبیین حضرت محمد (ص) د لارې پیروی وکړه او د اسلامي دعوت او جهاد په لړکې یې د اسلام پاک دین د ټولې نړۍ او سیدونکو ته ورساوه او خلکو دیو نړیوال دین په توکه ومانه.

لومړی خلیفه د اسلامی هدایاتو او لارښوونو سره سم د اسلامی جهاد په سیوری کې د اسلام پاک دین د فارس خلیج غاړې ته ورساوه او د فتوحاتو لاریې د ایران او افغانستان خواته پرانیستله.

د مسلمانانو دوهم خلیفه حضرت عمر (رض) د خپل

خلافت په وخت کی د جهاد په رڼا کې د ایران خاورې ته ورننوت

او د اسلام مقدس دین یې هلته خپور کړ او د اسلام مجاهدین

د افغانستان لویدیځ او جنوب لویدیځ خواته د همدې دوهم

خلیفه په وخت کې راورسیدل . په دې وخت کې حضرت عمر (رض)

په شهادت ورسیده او تر یو لږ وخته پورې د افغانستان

نورو برخو ته د اسلام د مقدس دین خپریدل وځنډیدل

د دریم خلیفه حضرت عثمان (رض) په وخت کې مسلمان

مجاهدین بیا د افغانستان خاورې ته راورسیدل او د اسلام

د خپریدو د پاره یې نقشه جوړه کړه، او د نقشې د عملي کیدو

په لړ کې مسلمانان تر کابله پورې راورسیدل، یوازې کابل

شاهانو یا ورو کوشانیانو د پاچهۍ او قدرت د لاسه ورکولو د مخنیوي

په مقصد یو څه وخت په مکر او حیله تیر کړ، اما ورسته چه یې

ځان کې د مقاومت توان ونه لید نو مسلمانانو ته یې د تسلیم

سرونه تیت کړل او حق ته یې غاړه کینښوده، پدې توګه کابل د مسلمانانو په لاس فتحه شو.

څه وخت چې کابل د مجاهدینو لاس ته ورغی د اسلامي دعوت لپاره لاره خلاصه شوه او په دې لږ وخت کې ډیر زیاتي سیمې په اسلام مشرفې شوې او وسیدونکي یې د توحید د کلمې لاندې سره راټول شول البته وروسته بیا د افغانستان مسلمانانو هم د اسلام د خپرېدو په لاره کې د قدر وړ خدمتونه وکړل.

## پوښتنې:

۱ـ د اسلام د راتګ څخه د مخه افغانستان په کوم نوم یادیده؟

۲ـ د اسلام څخه د مخه د افغانستان وضعیت څنګه و؟

۳ـ مخکې د اسلام څخه په افغانستان کې کوم دینونه رواج وو؟

۴ـ د مسلمانانو د کوم خلیفه په وخت کې کابل په اسلام مشرف شو؟

په راتلونکی شکل کی کولای شو چه څلور خواوی سنه و پيژنو :




د :- دکورنۍ پيژندنه :

دانسان دژوند دوروکتوب دوره په کورنۍ کی د تولد ځخه پيل کيږی. کورزمونږ د ژوند لمړنی ځای دی چی زمونږ په هغه کی پالنه کيږی. اونيکه ، نيا ، مور ، پلار ، مشران ورونه او خويندی په کي ډيری لوی وظيفی لری. کورنۍ د دوو انسانانو د واده کولو په نتيجه کې جوړيږی که چيری د واده په يوی آرامی او صميمی فضاکی د اسلامی اخلاقو سره

۵- د اسلام پاک دین د کوم خلیفه په وخت کې افغانستان ته راورسید ه؟

۶- کوچنیو کوشانیانو د څه لپاره د مسلمانانو په مقابل کې په مکر او حیله لاس پورې کړ؟

۷- د کابل د نیولو څخه وروسته مسلمانانو په څه شی شروع وکړه؟

۸- د اسلام مقدس دین په څو مره وخت کې په افغانستان کې خپور شو؟

۹- د افغانستان مسلمانانو د اسلام د خپرید و لپاره څه وکړل؟

# پنځم فصل

# افغانستان

افغانستان زمونږ گران هیواد په منځنۍ آسیا کې واقع دی.

۱ـ دافغانستان څلور خواوې :

دافغانستان شمال خواته تاجکستان اوترکمنستان، جنوب او جنوب ختیځ خواته یې پاکستان اولویدیځ ته یې دایران اسلامي جمهوریت واقع دی . او هم د ختیځ پلوه د پامیر په علاقه کې (۱۰۰) کیلومتره دچین سره گډ سرحد (پوله) لري .

## ۲ـ دافغانستان طبیعي جوړښت او مساحت:

افغانستان یوغرنی هیواد دی چه شپږ لکه پنځوس زره (۶۵۰۰۰۰) کیلو متره مربع مساحت لري.

## ۳ـ د افغانستان آبُ هوا:

دافغانستان اکثره غرنی ځایونه د ژمي یخه هوا لري. په دوبي کې ئې دهوار و ځمکو هوا نسبتاً وچه او ګرمه ده.

افغانستان ښکلي غرونه لري چه دغر و په لمنو او د روښني یې رڼې او پاکې اوبه بهیږي. د همدغه غرو له برکته اکثره ځایونه په دوبي کې هم نرمه او معتدله هوا لري. د کلنی اورښت اندازه هم د افغانستان په مختلفو سیمو کې سره توپیر لري چې لوړه سیموکې دواوری او په ټیټو سیمو کې دباران به شکل لیدل کیږي په عمومي صورت دافغانستان مرکزي او شمال ختیزې سیمې سړه او ختیزې او جنوب لویدیزې سیمې توده هوا لري.

## ۴- دافغانستان سیاسي ویش :

اداري پلوه افغانستان په (۲۹) ولایتو ویشل شوی دی چه نومونه یې دادي:

بدخشان، بغلان، بادغیس، بلخ، بامیان، فراه، فاریاب، غزني، غور، هرات، هلمند، جوزجان، کابل، کاپیسا، کنړ، کندز، لغمان، لوګر، نیمروز، ننګرهار، پکتیا، پروان، قندهار، سمنګان، تخار، ارزګان، وردګ، زابل، پکتیکا.

کابل د افغانستان مرکز (پای تخت) دی چه په (۱۹۸۶) میلادی کال کې ۱/۲ ملیونه تنه اوسیدونکی درلوده.

هر ولایت یو مرکز لري او د والي له خوا اداره کیږي.

اطرافي حکومتونه یې د ولسوالي او علاقه داري په نامه یادیږي.

چه د ولسوال او علاقه دار له خوا اداره کیږي.

---

نوټ :

مناطقي منبوونکی دی د افغانستان ولایتونه او مرکزونه د نقشي له مخې شاګردانو ته وښیي.


ترکمنستان
ازبکستان
تاجکستان
ایران اسلامي جمهوریت
پاکستان اسلامي جمهوریت
د افغانستان سیاسي نقشه
فاریاب
میمنه
بادغیس
قلعه نو
هرات
غور
چغچران
فراه
نیمروز
زرنج
هلمند
کندهار
زابل
قلات
ارزګان
غزني
وردګ
میدان
بامیان
کابل
پکتیا
بغلان
کندوز
ایبک
سمنګان
تخار
تالقان
بدخشان
فیض آباد
پامیر
کونړ
اسعد آباد
لغمان
ننګرهار
جلال آباد
پروان
چاریکار
ښوونکي صاحب دی!
د پورته نقشې له مخې د افغانستان
ځلور خواوې، د هر ولایت موقعیت او مرکز
شاګردانو ته وښیي. د ولایتو مرکزونه په (٥) نښې سره ښودل شوي دي.

## ۵ـ کرنه:

دافغانستان وګړي په سلوکي پنځه اتيا ٪۸۵ په کرنه او مالدارۍ بوخت دي کراوکيل دغرو په لمنواودروکې ـ کيږي.

دکرنې مهم حاصلات يې غنم، جوار، پنبه، لبلبو، وريجي، با قلي، نخود، مځه، اوربشي او داسې نور دي.

همدا رنګه ترمونږ هيواد هر رنګه تازه اووچې ميوې لکه انګور، مڼې، خټکي، انار، پسته، بادام، چارمغز او داسې نور لري.

## ٦ـ صنعت:

په افغانستان کې د نساجې حجارۍ اونجارۍ، کشمش پاکې ـ سمنتواوبريښنافابريکې موجودې دي

لاسي صنايع لکه غالۍ اوټغراوبدل، برکه اولومځې

جوړول هم د ډیری زماني راهیسی زمونږ په هیواد کي رواج لري.

## کانونه :

زمونږ هیواد ډیر کانونه او طبیعي شتمنی لري مثلاً : د ډبرو سکاره، مالگه، لاجورد، زمرد، بیروج، طبیعي غاز، اوسپنه، مس، تیل او داسی نور چی له هغو څخه اوس د ډبرو سکاره او طبیعي غاز د هیواد په اقتصاد کی لویه ونډه لري.

## ۸ـ د افغانستان صادرات او واردات :

افغانستان هر کال یوه زیاته اندازه وچی او تازه میوی لکه: انگور، خربوزی، چارمغز، او همدا ډول طبیعي غاز، مالوچ، قره قلی او نور پوستکی، وړی، غالی، تغر، زیتون او داسی نور بهرنیو هیوادو ته صادروی او په مقابل کی یی ماشینونه او نور مصرفي مواد هیواد ته واردیږی.

۹ـ د افغانستان مهمی ژبي: د افغانستان او سیدونکي په زیاتو ژبو خبری کوي.

پښتو او دری د افغانستان رسمی ژبی دی همدا

رنګه په ترکمني، ازبکي، پشه یي او

قرغزي ژبو هم خبري کیږي.

## ۱۰- د افغانستان غرونه:

افغانستان یو غرنی هیواد دی چې ځینی غرونه یې په

ځنګلونو پوښل شوی دی.

مهم ځنګلونه د پکتیا، پکتیکا، ننګرهار، کنړ، لغمان او بادغیس

په ولایتونو کې شته. چې د ناجو، ځنغوزي، سپر، شیري

ښنتر ونې لري.

ځنګلونه میوه لرونکی او بې میوی ونی لري. ځینی

غرونه د قیمتی کانونو لکه: لاجورد، زمرد، او سپینی،

سرو زرو او مسو کانونه لري.

نوموړي ذکر ان هیواد اکثره غرونه په واورو پټ وي

دغرو واورې د پسرلي او اوړي په موسمونو کې ورو، ورو ويلي

کيږي.



چه له اوبو څخه يې سيندونه، ويالې او خوړونه جوړيږي.
د دغه اوبو څخه د غرو په لمنو او دروکي د کرنې لپاره استفاده

کيږي.

مجاهدينو په غرونو کې د وطن د ساتلو لپاره سنګرونه

جوړ کړي دي لدي سنګرونو څخه مجاهدين د دښمن په قوا وسخت

بريد ونه کوي او وروسته له بري نه خپلو سنګرو ته ځي.

خپل ژوند ته ادامه ورکړي. خپل مسؤلیت و پیژني او د هغه په سرته رسولو کې کوښښ وکړي نو د هغوی ځامن به په راتلونکې زمانې د اسلامي ټولنې صالح انسانان وګرځي.

د روزنې له نظره زمونږ د پالني لمړني نسبت کورنۍ ته تشکیلوي چه بنیاد او بنه د هغه ځای تخم زده کوي. تر دې حده پورې چه انسان د اسلام او کفر سبق هم کورنۍ تخم زده کوي. په کورنۍ کې او سیدل ټولنې ته د ننوتلو د پاره یوه مقدمه ده. چه ډیر اهمیت لري ښه کورنۍ ته ښه مدرسه ګڼل کیږي چه په هغې کې و چینیا ته د ایمانداری، راستکاری، وظیفه پیژندنې او ښو اخلاقو سبق ورکول کیږي تر څو په اسلامي ټولنه کې ګټور غړي وروزل شي خرابه کورنۍ برخلاف ډیره بده ټولنه ده ځکه په داسې کورنۍ کې ماشومان د رواغجن، بد اخلاق او وظیفه نه پیژند ونکي روزل کیږي ځکه نو لازمه ده تر څو د کورنۍ د غړو تر منځ محبت او حقیقي مهرباني موجوده وي.

دافغانستان مشهور غرونه دادي: هندوکش، سپین غر، باباغر، سلیمان غر، سفیدکوه، سیاه کوه، تیربند، ترکستان او داسې نور.

**سیند ونه**: زموږ په هیواد کې زیات سیندونه له مرکزي غرونو څخه سر چینه اخلي او د هیواد په دروکې کله ورو او کله په زیاتې چټکتیا حرکت کوي سیندونه زموږ په هیواد کې زیات اهمیت لري. البته د آمو له سیند څخه پرته زموږ هیڅ سیند د بېړیو د چلولو لپاره ګټور نه دی ځکه زیات یې له غرنیو سیمو څخه تیرېږي د افغانستان ځنې سیندونه په شګلنو بیدیاوو کې جذبېږي او ځنې یې نور هیوادونو ته لکه د روسیې تر استعمار لاندې جمهوریتونو، پاکستان او ایران ته جریان لري او په هیواد کې دننه ورڅخه لږه ګټه اخستل کیږي د کابل، آمو، هلمند او هریرود سیندونه په افغانستان کې مشهوردي.

پوښتنې:

۱ـ زموږ د ګران هیواد مشهور غرونه کوم دي؟

۲ـ زموږ د هیواد کوم غرونه ځنګلونه لري؟

۳ـ ځنګلونه څه ګټې لري؟

۴ـ غرونه د جهاد لپاره څه ګټې لري؟

۵ـ زموږ د هیواد سیند ونه له کوم ځای څخه سرچینه اخلي؟

۶ـ د افغانستان سیندونه کوم لوی تنګیان لري؟

۷ـ د افغانستان مشهور سیندونه کوم دي؟

# شپږم فصل

# دافغانستان تاریخ

## الف - په افغانستان باندی دانګریزانو لومړی تیری:

انګلیسانو په افغانستان باندی په څلو لومړی تیری کې د سدوزیو او محمدزیو پاچهانو داخ وډب څخه ګټه واخیسته دوی شاشجاع چه هندوستان ته تښتیدلی وُ دخان سره راووست او په (۱۲۵۵ هـ ق) کال یې په افغانستان حمله وکړه.

دانګریزانو دوه فوځونه دجلال آباد او قندهار

دلاری افغانستان ته رانوتل، په قندهار، غزنی، کابل

اوبامیانوکې پریوتل، او په ورو ورو قوی کیدل، د قوې

کیدونه وروسته انګلیسی فوځونه بیا د شاشجاع دوستان

نه بلکه د افغانستان اصلی واکمنان شول. مکناټن چه د

سفیر په توګه راغلی وُځان ئې صدر اعظم کړ.

شاشجاع د یوځه وخت لپاره حکومتی کارونه سرته رسول،

لیکن وروسته بیا داسی وخت راغی چه د خپل کور څخه بیرون نه

شو وتلی.

دی کوډاکي شامکناټن ته خوځلی یادونه وکړه چه

مملکت آرام دی، او ستاسی فوځ ته ارتیا نه پیښیږی، مکناټن

په ځواب کې ورته ویل چه ترڅو پورې د بهرنی تیری ویره وی،

ترهغی پورې به انګلیسی فوځونه په افغانستان کې پاتې وی.

څه وخت چه د دې هیواد مجاهد ولس پوه شو چه شاشجاع

هسی د یوه ګوډاګي په توګه ناست دئ، او ټول اختیارات
دانګریزانو په لاس کې دي، په هر ځای کی د د ښمن په مقابل
کې په جهاد را پورته شول.

پدی ناز که وخت کې چه ټول مجاهد مسلمانان د ښمن
سره په مقدس جهاد لګیا وو، دوست محمد په ناڅاپي توګه
انګلیسانو ته تسلیم شو، پدی کار سره د مسلمانو مجاهدینو
روحیه او اسلامی جذبه کمزوری نه شوه او سمدستی کوهستان
کې د حق د لاری مجاهدین د میر مسجدی خان تر مشری لاندی
په د ښمن پریوتل. په قندهار، غزنی او لوګر کې هم د حق
د لاری مینان د جهاد پاکو سنګرونو ته ولاړل او په غلیم یې
د تورو تور تم جوړ کړ.

## ۹- د یوي اسلامي شوری جوړیدل:

د مسلمانو مجاهدینو مشران د روژی په (۱۶) ورځ په (۱۲۵۷ ق کال)

سره راتول شول او يوه اسلامي شوری يې د جهاد دکارونو د پرمختګ لپاره په کابل کې جوړه کړه. د شورى غړو نواب محمد زمان خان خپل مشر او امین الله خان لوګری يې د شورى نائب وټاکه.

امین الله خان د جهاد په ډګر کې ټکره مجاهدين درلودل ځکه د ټولو مجاهدينو د توجه وړ ګرځيدلی و او د جهاد زياتره وظيفې يې هغه ته سپارلې وې.

د روژى په (۱۷) ورځ چه ټول مجاهدين د امين الله خان لوګری او عبد الله خان اڅکزی د قوماندې لاندې سره راټول شول په دښمن يې حمله پيل کړه، د کابل ښار ته ورننوتل د انګليس د فوځ مشر «برنس» يې ووژه او ځينې نور يې ژوندی ونيول، مکناټن په يوه چل د ... ل ځان فوځي چوڼۍ ته ورساوه او د باقي فوځ

سره په بالا حصار کې کلا بند شو.

د دښمن فوځ چه د مجاهدينو په مقابل کې په مخامخ جګړه کې د ماتې سره مخامخ شو، او نورېې په ځان کې د مقابلې توان نه ليده، په چل او ټګۍ يې پيل وکړ او غوښتل يې چه مجاهدين په خپلو منځو کې بې اتفاقه کړي، ولې د دښمن دې بې ځايه کوښښونو دوی ته کومه ګټه ونه رسوله.

## ۲- د وزير محمد اکبرخان راتګ:

وزير محمد اکبرخان د بخارا د بند څخه خلاص او خپل ملک ته راغی، په راتګ يې مجاهدين ډير خوښ شول او په ګډه سره د کابل په لوړ وخوځيدل، د نورو ځايونو څخه هم داوطلب مجاهدين د کابل خواته وکوچيدل، او ټولو په يوه قومانده د «الله اکبر» نارې په ويلو سره د دښمن په سنګرونو بريد ونه شروع کړل، مکناټن سخت وارخطا شو او د مجاهدينو

دمشرانوځخه یې د درزبند غوښتنه وکړه.

دوزیرمحمد اکبرخان اومکناټن ترمینځ دکابل په چمن کی خبرے اترے پیل شوې، دخبروپه لړکې نوموړي وزیر دمکناټن په قصد پوه شوچه دبرید تیاری نیسی - پری لمړی شواودمحمد شاه خان په ملګرتیا ئے مکناټن وواژه اونورملګری یې ورنه ژوندی و نیول انګریزان چه د مکناټن دوژلوځخه خبرشول دکابل د پریښودلوځخه پرته یې بله لار نه درلوده بدی ډول یې خپل فوځونه دجلال آباد په لوروخوځول ولی په خوردکابل اوخاکی جبارکې د مجاهدینو د سختوحملولاندی راغلل او د دښمن ټول فوځ جلال آبادته د رسیدوځخه مخکی په لارکې تباه شو، یوازی د اکتر(برایډن)په نیم ژوندی حالت ځان جلال آباد ته ورساوه اودانګریزانولښکرفوځ ته ئې په جلال آبادکې د خپلی ماتی قصه تیره کړه.دی ماتی د برطانیې حکومت د دیری

ویری سره مخامخ کړ.

وزیر محمد اکبرخان د دښمن د فوځ پسې د جلال آباد خواته وخوځیداو د دښمن فوځ یې لوړ هم د ماتې سره مخامخ کړ.

داوخت په کابل کې د مجاهدینو دشورې له خوا یوه لویه غونډه وشوه اوپه هغې کې یې د شاشجاع ځخه وغوښتل چه د انګریزانو په مقابل کې د جهاد اعلان وکړي.

شاشجاع د پورتنۍ فیصلی له مخې په ۱۲۲۱ هـ ش کال د حمل د میاشتې په دیارلسمه ورځ د سهار له خوا جلال آباد ته د روانید وپه وخت کې د مجاهدینو له خوا وویشتل شو او مړ شو، او زوی یې فتح جنګ په تخت کینینول شو.

وزیر محمد اکبرخان چه څه وخت کابل ته ورسید، فتح جنګ یې د تخت ځخه کوز اوبندی کړاو د حکومت چارې

مونږ باید په کورکې د مور، پلار، ورونو او خویندو په مرسته د مدرسې سبق ووایو. او د کور په کارونو کې د هغوی سره مرسته وکړو.

## هـ - د مدرسې پیژندنه:

مدرسه د پوهې او علم د زده کړې ځای دی. ځکه نو پر مونږ باندې ګرانه ده. او ورسره مینه لرو. ښه زده کوونکي کوشش کوي چه د مدرسې په چاپیریال کې علم، اخلاق او د خدای (ج) بندګي زده کړي. څو مره چه علم او معرفت ترلاسه کړو هغومره د کمال مرتبې ته نژدې کیږو. که زمونږ هدف د علم د زده کړې نه د اسلامي دین او آئین ژوندي کول وي. زمونږ درجه به د پیغمبرانو سره نژدې وي. او که د علم د زده کړې او پاک جهاد په لاره کې مړه شو د شهادت درجه به مونصیب شي. په مدرسه کې د علم د زده کړې نه مقصد یوازې دا ندی چه په امتحان کې بریالي شو بلکه اصلي مقصد دا دی چه د مدرسې هر

یې په خپل لاس کې واخیستې.

پدې وخت کې دوست محمد چه هیڅکله ئې د مجاهدینو ملاتړ نه و کړی او د تل لپاره یې د خپلو شومو هدفونو لپاره هلې ځلې کولې، داخل بیا د خپلو انګلیسی بادارانو ملا ماتوونکو غوښتنو ته تسلیم شوا و وزیر محمد اکبرخان ته یې یو لیک راواستاوه چه په هغې کې یې مجاهدین د انګلیسانو په مقابل کې د جګړې څخه منع کړی وو، د لیک د رسید و سره سم مجاهدینو په دښمن د برید څخه لاس ونیوه.

انګلیسانو د دې فرصت څخه ګټه واخیسته او د وتلو په وخت کې یې د هیواد د یرو ځایونو ته سخت تاوانونه ورسول د دې ورانکارۍ په لړکې مجاهدینو بیا په د ښمن حملې شروع کړې او د انتقام اخستلو څخه وروسته یې په تیښته د ملکه و شړل دوست محمد چه انګلیسانو هند ته بندی لیږلی و بیرته کابل

ته راغی او د پاچهی په تخت کښیناست .

## ۳- د دوست محمد پاچهی :

دافغانستان مجاهد مسلمانان دانګلیسی وینی څښونکی دښمن سره د څو کلونو جهاد او زرګونو شهیدانو ورکولو څخه وروسته د دښمن په مقابل کی بریالی شول او خپل ملک یې دانګلیسانو د ناپاکو منګلو څخه خلاص کړاو دوست محمد په تیاره راغی او د ملک واکمنی یې ترلاسه کړه .

انګلیسان بیا هم کارپاتی نه شول او په دوست محمد باندی یې خپلی هر راز غوښتنی ومنلی ، ده هم د پاچهی د ساتلو لپاره د دښمن ټولی غوښتنی پرځای کړې ، دی باچا یو بل کار هم وکړ . چه هغه د حق دلاری مجاهدینو

دځینو مشرانو په شهادت رسول وو.

ددوست محمد دحکومت په وخت کې سلطان احمد چه وراره یې وُ دحکومت دلاس ته راوړلو دپاره دخپل تره سره په مخالفت شروع وکړه. سلطان احمد ماتې وخوړه او دوست محمد هم ددې شخړې دختمید وځنه وروسته په هرات کې مړشو او هلته خاوروته وسپارل شو.

ددوست محمد دمړینې ځنه وروسته شیرعلی خان پاچا شو دده وروڼو په هیواد کې بیا دواکمنۍ دلاس ته راوړلو لپاره الې کولې شروع کړې او دخپل ورور په مقابل کې راپاڅیدل، پدې اخ ودب کې شیرعلی ماتې وخوړه او محمد افضل خان پاچاشو.

شیرعلی بیا دحکومت دنیولو لپاره دمحمد افضل سره په جګړه لاس پورې کړ، دیوکال حکومت کولو ځنه وروسته

محمد افضل مړ شو او محمد اعظم یې پر ځای په تخت -
کښیناست .

دده د پاچاکید وروسته سم شیرعلی د کابل په لور وخوځید
دیوی جګړی په ترځ کې محمد اعظم ماتې وخوړه او شیرعلی
د دوهم ځل د پاره پاچهی ته ورسید .

## ۶- د شیرعلی دوهم ځل پاچهی :

شیرعلی د خپلی پاچهی په دوهم ځل د روسانو سره خپل روابط
ټردی کړل په دی مقصد چی ګوندی د انګلیسانو د حملی په وخت کې به
د روسانو سره مرسته وکړی ځکه نو د روسانو سره یې د دوستی یو قرارداد هم لاسلیک
کړ چه د دی قرارداد له مخې روس کولای شول چه په هندوستان
باندی د حملی په وخت کې د افغانستان د خاوری څخه تیرشی
او ځینی نور شرطونه یې هم ورسره ومنل .

د برطانیې حکومت د افغانستان او روسیې ترمینځ

داریکو په نژدی والی سخت خپه شو او دا کار یې د ځان لپاره
سنګاره تیری او خطر باله.

ځکه یې ژر تر ژره هیواد د دری خوا و څخه حملې شروع
کړې، شیرعلی په دی وخت کې وغوښتل چه د روسیې څخه د
قرارداد له مخې نظامی مرسته واخلی په دی توګه یې د روسیې
په لور سفر وکړ، کله چه مزارشریف ته ورسید د روسیې
د حکومت سره یې د لیک تماس ونیو، روسان چه له پخوا څخه
په ټګۍ او منافقت عادت لری یو ځل بیا یې خپله دوه مخې
څیره راښکاره کړه او د شیرعلی سره یې د مرستې کولو څخه ډډه
وکړه ځکه روسانو غوښتل چه افغانستان په دوه برخو
وویشي(۱) او د شیرعلی څخه په دی ویشنه کې دیوی آلې په توګه

---

(۱)

روس او انګلیس په دی صلاح شوی وو چه افغانستان په خپلو منځو کې سره وویشي.

کار واخلی.

څه وخت چه شیر علی د روسانوله خوا د مرستی نه

کولو ځواب واوریده په ناڅاپی توګه ناروغه شو او له دنیا

څخه یې سترګې پټی کړی.

شیر علی که څه هم د افغانستان د مجاهد او مسلمان

ولس لپاره د علم او پوهی په نوم ځینی اقدامات وکړل او د

شمس النهار ورځپاڼه یې د ولس د پوهولو د پاره نشر وله

او د عسکرو د تنظیم لپاره یې هم ځینی کمتور کامونه پوره کړل

اما د خپلو پلرونو په شان یې د افغانستان د مجاهدو مسلمانانو

د جهادی قوت څخه کته وانه خیسته او د خپل حکومت په دوهم

ځل یې د روسانو سره خپلی اړیکی نژدی کړی  د خپل تنظیم

شوی مسلمان فوځ څخه یې توجه وګرځوله او په روسانو یې

تکیه وکړه، اما کله چه انګلیسانو په افغانستان حمله وکړه

دوه مخې روسان مرستې ته حاضر نه شول او لوموړي
هیواد یو ځل بیا د وخت د پاچهانو د سیاسي کمزورۍ
په سبب د انګلیسي استعمار په دام کې ګیر شو .

ب : په افغانستان باندی دانګریزانو دوهم تیری :

دافغانستان په مجاهدو مسلمانانو دانګریزانو دوهم تیری دلومړي تیري څخه (۳۵) کاله وروسته وشو .

څه وخت چه محمد یعقوب د شیرعلی د مړینې څخه وروسته په تخت کښیناست دلومړۍ ورځې څخه یې خپل هیواد په انګریزانو خرڅ کړاو د هغوی سره یې د ګندمک شرموونکې معاهده په (۱۲۹۶ ه ق) کال کې لاسلیک کړه ، د دی معاهدې له مخې محمد یعقوب دانګریزانو یو سفیر په کابل کې ومانه او هم افغانستان د انګلیسانو دمشورې څخه پرته نه شو کولی چه د نورو هیوادونو سره خپل روابط وساتی . په دی توګه نوموړی هیواد په رسمی توګه د انګلیسانو پورې وتړل شو .

دکندمک دمعاهدی څخه یوه میاشت وروسته (کیوناري) دانګلیسانو سفیر کابل ته راغی او دملک اختیارات یې په خپل لاس کې ونیول. اما مؤمن اوایماندار مجاهدین پدی یوه شول او پری راپاڅیدل، کیوناري چه د مجاهدینو حمله ولیدله خپل ځان او ملګری یې په اورکې وسوځول.

هغه وخت چه دانګلیس حکومت د کیوناري د وژلو څخه خبر شو، د قندهار، کرمی او خیبرله لاري یې خپل فوځونه افغانستان ته رادننه کړل «رابرت» دانګلیس د فوځ مشر کابل ونیو، بالاحصار یې لوټ کړ او محمد یعقوب یې بندی هندوستان ته ولیږه.

## دانګلیسانو په مقابل کې د جهاد پیل

څه وخت چه د انګریزانو فوځونه د ګندمک د شرموونکی معاهدی او کیوناری د مرګ څخه وروسته افغانستان ته رانوتل او محمد یعقوب یې هندوستان ته بندی ولیږه د حق د لاری مجاهدین په ټول هیواد کې دد ښمن په مقابل کې راپورته شول د کابل، کوهدامن او کوهستان مجاهدین د غلام حیدر خان کابلی، میربچه خان کوهدامنی او محمد کریم خان ترقوماندی لاندی، د تګاب او نجراب مجاهدین د محمد عثمان صافی ترمشرۍ لاندی، د لوګر مجاهدین د غلام حیدر خان څرخی ترقوماندی لاندی، د میدان او وردګو مجاهدین د محمد جان خان وردګی ترقوماندی لاندی، د غزنی مجاهدین د ملادین محمد اندړ ترمشری لاندی، د هرات مجاهدین

زده کونکی ښه طالب، پاک انسان، غښتلی مجاهد او

په اسلام مین وی. د زده کړې او روزنې د شیلنځخه ډیری

فایدې واخلی: ښه مور او پلار او استاد هیله داده چه زامن

او شاګردان ئې د روزنې په ډګر کې تل بریالی او خوشبخت

وی. د تکالیفونه ئې ی صبر او خفه نه شی او په راتلونکی کې د

علم او کمال خاوندان ګرځی. تر څو وکولای شی ځان او خپلی ټولنی

ته لوی خدمت ترسره کړی.

## و - د ټولنې پیژندنه :

ټولنه د یو شمیر کورنیو افرادو د ټولنې دی کید لو په اثر منځ ته

راځی. په اسلامی ټولنه کې مسلمانان مکلف دی چه په اسلامی طرز

ژوند وکړی. د کاوندیانو او خپلوانو سره ښیګڼه وکړی. د هغوی

په خوشحالی کې خوشحال او په غم کې ی غمجن اوسی او کړیی

د محمد ایوب خان تر قوماندی لاندی ، د ننګرهار مجاهدین

د عصمت الله جبار خیل تر قوماندی او نور په زرګونو

داوطلب مجاهدین د انګلیسی دښمن سره د مقابلی لپاره

د مقدس جهاد میدان ته را ووتل او په پاک ایمان او عقیده

د «الله اکبر» ناره په ویلو سره یې خپلی بی دریغه او غوڅی

حملی شروع کړې او د کابل د ښار و خوا مهم ځایونه یې د

برید و نو لاندی ونیول .

غازی محمد جانخان په قلعه قاضی کی په دښمن حمله

وکړه د خونړی جګړی ور وسته یې دښمن ته ماتی ورکړه ،

وروسته بیا «رابرت» د غازی محمد جان خان مقابلی ته ووت

ولی د رابرت فوځ د اسی ماتی وخوړه چه په تیښته یې ځان

شیرپور ته ور ساوه، بیا مجاهدین د کابل ښار ته ور ننوتل ،

ښار یې و نیوا و د رابرت فوځونه د شیرپور په قلا کې

کلابند شول .

پدی وخت کې په کابل لوګر ، ننګرهار، پروان، وردګو غزنی، کوهستان او نورو ځایونوکې دحق دلارې نور داوطلب مجاهدین د خپلو مجاهد وروڼو سره یوځای شول چه ډیر قوت او قدرت یې پیدا کړ.

«رابرت» چه دحق دلارې د پټنګانو د نوی تیارې څخه خبر شو خپل معنویات یې د لاسه ورکړل او د افغانستان څخه د خپلو فوځونو د ایستلو په فکر کې شو او په ډیره هوښیارۍ سره یې په هیواد کې اعلامیې خپرې کړې او داسې یې په کې لیکلي وو چه :

انګلیسان پرته د جګړې څخه خپل فوځونه د افغانستان څخه وباسي، او د دی ملک او سید ونکی چه هر څوک په خپل مشرۍ و تاکی دوی یې په رسمیت پیژني .

د دې اعلاميې په خپرولو سره ټول ولس ديومشر

ټاکلو ته متوجه شول د جهاد په نظم کې بدلون راغی دښمن

د دې موقع څخه ګټه واخيسته، د هند وستان او جلال آباد

څخه يې نوی فوځونه راوغوښتل او د مجاهدينو په ځينو

ځايونو يې بريد ونه پيل کړل.

## د عبدالرحمن راتګ :

په (۱۲۹۸) ه ق، کال عبدالرحمن د بخارا څخه افغانستان

ته راغی، او د خپل مسلمان ملت د ملاتړ حاصلولو د پاره يې

ټول ولس ته خطونه وليږل او د انګليسانو د ايستلو پاره

يې د هغوی نظريات ځان ته څرګند کړل، په دې وخت کې د

هرات څخه محمد ايوب خان عبدالرحمن ته خطونه ور

- واستول او په هغې کې يې د عبدالرحمن څخه غوښتي وو

چه :"د دښمن په ايستلو کې بايد يو د بل ملاتړ وکړو" ولې

عبدالرّحمٰن د هغه خطوته کوم کېتور ځواب ور نکړ .

عبدالرّحمٰن په دی وخت کې د یو زیات شمېر مجاهدینو سره یو ځای چار یکار ته را رسید لی وُ او غوښتل یې چه په دښمن حمله وکړی، انګریزانو چه خپله ناکامی لیدله هغه ته یې بلنه ورکړه چه کابل ته راشی او واکمن شی .

عبدالرّحمن هم د انګریزانو په غوښتنه کابل ته راغی او د ملک اختیارات یې په لاس کې ونیول او دا په داسی حال کی چه غازی محمد جانخان او ملا مشک عالم لا تر اوسه پوری د هیواد څخه د انګریزی دښمن د وتلو او د مجاهدینو په راتولولو لګیا وو .

## پوښتنی

۱ـ انګریزانو په لمړی ځل څنګه او ولی په افغانستان تیری وکړ ؟

۲ـ انګلیسانو ولې قواوې د کومو ځایونو څخه افغانستان
ته راداخلې کړې؟
۳ـ انګلیسانو په لومړۍ تیرۍ کې څو ک دیوکوډاکې په
توګه د ځان سره راوروست؟
۴ـ مکناټن څوک وُ او په افغانستان کې یې څه وظیفه
درلوده؟
۵ـ په کوهستان کې څوک د چاپه مقابل کې د جهاد لپاره
راپورته شو؟
۶ـ اسلامي شورې څه وخت جوړه شوه او ناُب یې څوک
وُ؟
۷ـ وزیر محمد اکبرخان دکوم ځای څخه هیواد ته راغی
او بیا یې څه وکړل؟
۸ـ مکناټن د چا له خوا ووژل شو؟

۹ـ ډاکتر برایډن څوک وُ؟

۱۰ـ دوست محمد د انګلیسی دښمن کوم وغوښتنو ته تسلیم شو؟

۱۱ـ سلطان احمد څوک وُاو د چا په مخالف راپورته شو؟

۱۲ـ شیر علی خان ته د روسیې دوستی او د انګلیس دښمنی څه کته ورسوله؟

۱۳ـ انګلیسانو ولی په افغانستان باندی د دوهم ځل لپاره حمله وکړه؟

۱۴ـ شیر علی خان د خپلو تنظیم شوو عسکرو څخه د دښمن په مقابل کی څه کټه واخیسته؟

۱۵ـ یعقوب خان د انګلیسانو سره کومه معاهده لاسلیک کړه؟

۱۶ـ کیوناری څوک وُاو څه پری وشول؟

۱۷ـ په قلعه قاضي کې چا انګلیسی د ښمن ته ماتې ورکړه؟

۱۸ـ عبد الرحمٰن د کوم ځای څخه چپل ملک ته راغی او

څه يې وکړل؟

۱۹ـ محمد ایوب خان د عبد الرّحمٰن څخه د څه شي غوښتنه

کړې وه؟

۲۰ـ د انګلیسانو د دوهم ځل ماتې وروسته څوک د

چارو واکمن شو؟

## دعبدالرحمٰن حکومت ته یوه کتنه :

څه وخت چه محمد ایوب خان د عبدالرحمٰن څخه کوم کمزور ځواب په لاس رانه ووړ ځکه نو د هرات د زړه ورو مجاهدینو په مشری د قندهار په لور وخوځید .

د میوند د ښتی ته ور سیدل ، شپږ ورځې یې هلته تیری کړې. په اوومه ورځ د خدای (ج) په مینه مستو مجاهدینو د سهار نه په د ښمن حملې شروع کړې.

د غرمې پورې ډیر مجاهدین شهیدان او ټپیان شول ، اما د غرمې څخه ورو سته یوی ډلې مجاهدینو د شاله خوا په د ښمن حمله وکړه او د هرې خوا په د ښمن بریدونه شروع شول . لنډه دا چه د د ښمن ډیر زیات پوځیان د جنګ په میدان کې د ونو د پاڼو په شان راتوی او مړه شول او پاتې یې د ډیری وارخطایۍ څخه وتښتیدل ، اما مجاهدینو

له خوا تعقیب او پرته د خو تنو تخنو نور ټول د تباهی کندی ته ولیږل شول.

دانګلیس حکومت چه د میوند په جګړه کې خپله ماتی ولیده، رابرت ته یې امر وکړ چه قندهارته د کلابند فوځ دخلاصون لپاره کومک ولیږی، ولی دامرسته لیږل څه آسانه کارنه ؤ.

انګریزانو د دی مرستی دلیږلو لپاره د عبد الرحمٰن سره ارتباط ونیو، دخبرو اترو څخه وروسته انګریزانو د عبد الرحمٰن پیغام دخو تنو افغانی محافظو په ملګرتیا واخیست او د قندهار په لور روان شول. په لاره کې د دی ریاکار د ښمن د عبد الرحمٰن د باچهی او د ملک څخه د انګلیسانو وتل د مجاهدو مسلمانانو غوږونو ته ورسول او قندهار ته یې پدی توګه ځان ورساوه، قندهارته د رسیدو سره

سم یې په مجاهدینو حمله وکړه او قندهار یې ونیو، او د عبدالرحمن د طرفدارانو څخه یې یو تن ته وسپاره، انګریزان د افغانستان څخه ووتل او عبدالرحمن په (۱۲۹۸ ه ق) کال کې پاچا شو.

## د عبدالرحمن په وخت کې د انګریزانو پټې لاس وهنې:

انګلیسان چه په لومړۍ او دوهمه جګړه کې د افغانستان د مسلمان او مجاهد ملت په مقابل کې په ښکاره جګړو کې د ماتې سره مخامخ شول د نوموړي هیواد پر ضد سیاسی نفوذ د لوته مجبور شول اما په ځنګ کې یې د پټو لاس وهنو لار غوره کړه، چه د دښمن د غه پټه لاس وهنه د ښکاره تیریو څخه ډیره خطرناکه وه.

دانګلیسانو همد غه پټې هلې ځلې او د افغانستان

وکولای شی د هغوی سره لازمه مرسته وکړي. په یوه ټولنه

کې زموږ نږ دی خپلوان کاکا، ماما، د پلار خور، د مور خور او

د دوی ځامن دی. کاوندیان هم په دوهمه درجه کی ځای لري

ښوونکی، د مدرسی مدیر، سر ښوونکی، ملازم او د مدرسی

ټول زده کوونکي او نور هم د ټولنی غړي شمیرل کیږي. چه یو پر بل باندی

اسلامی حقونه لري. د یو مسلمان عالم ارزښت په یوه ټولنه کې

ډیر زیات دی. ځکه عالم په چل کولو سره کولای شی د ټولنی خلک

بد یو څخه منع او نیکی ته ئې لارښوونه وکړي.

نور عام خلک لکه دکاندار، کتاب پلورونکی، قصاب،

نانوای، بزاز او نور هم په ټولنیز ژوند کی اهمیت لري. که چیري

داسلامی قوانینو په مطابق عمل وکړي دټولنی گټور غړ

شمیرل کیږی. هر چیری چه مسلمانان ژوند کوي چه د

۱۳- ښوونکی باید د تدریس په وخت کی خپل زده کوونکي ارزیابي کړي.

۱٤- ښوونکی ته لازمه ده چی د زده کوونکو په منځ کی د ښه نیت او ورور ولی فضا برابره کړي.

۱٥- ښوونکی باید خپلو زده کوونکو ته په تدریس کی برخه ورکړي.

۱٦- ښوونکی دی د درس د مؤثرد کیدو په خاطر خپل زده کوونکي وپیژنی.

۱۷- ښوونکی دی د درس په پای کی زده کوونکو ته د پوښتنو کولو حق ورکړي.

۱۸- ښوونکی دی زده کوونکو ته کوزنی وظیفه ورکړي.

۱۹- ښوونکی دی په تدریس کی له محیطي، ساده او ارزانو موادو څخه گټه واخلي.

۲۰- ښوونکی دی په داسی دول د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب ووایی چی په راتلونکي کي د دوی د پوښتنو کولو استعداد کمزوری نشي.

۲۱- ښوونکی دی زده کوونکي وپوهوي چی د دی کتاب تمرینونه خپلو کتابچو ته نقل او هلته دی حل کړي.

د افغانستان اسلامي دولت

د ښوونې او روزنې وزارت

د تألیف او ترجمې ریاست

# تاریخ او جغرافیه

## د څلورم ټولګي لپاره

ترتیب کوونکی: امین الله «فرزانیار»

د افغانستان اسلامی دولت
د ښوونې او روزنې وزارت
د تألیف او ترجمې ریاست

# تاریخ
# او
# جغرافیه

## د ځلورم ټولګی لپاره

ترتیب کوونکی : امین الله «فرزانیار»

۱۳۷۷ کال

## دښوونکی لپاره لارښود:

۱- ښوونکی باید له پاکو جامو سره ټولګي ته ننوځي.

۲- ښوونکی باید ټولګي ته له ننوتو مخکی درسي پلان ولري.

۳- درسي پلان باید ددرسي ساعت مطابق جوړ شي.

٤- ښوونکي باید په تدریس کی له ډول ډول روشونو څخه کار واخلي.

۵- ښوونکی باید په ټاکلي وخت ټولګي ته داخل شي.

٦- ښوونکی باید خپل ځان دیو همکار په توګه زده کوونکو ته وروپیژني.

۷- ښوونکی باید ټولګي ته دننوتو په وخت کی سلام واچوي.

۸- ښوونکی باید دنوی درس په پیل بِسمِ اللّهِ الرَّحْمنِ الرَّحیم ووایی.

۹- ښوونکی باید دتدریس لپاره سه فضا برابره کړي.

۱۰- ښوونکی باید دزده کوونکو حاضری واخلي.

۱۱- ښوونکی باید دزده کوونکو کورنی کار وګوري او اصلاح یي کړي.

۱۲- د (کلموا الناس علی قدر عقولهم) مقولی پ نظر کی نیولو سره ښوونکی باید دزده کوونکو له سویې سره سم درس ورکړي.

الف: